دا د شعر کیــــــــږدی هغو قهرمانو کارګرانو ته اهداء کوم چې د سالنګ

په سختو غرونوکې یې د خپل وطن د انسان د تلوراتلو لار سیخه او هواره کړه .

(سلیمان لایق)

( د دوهم چاپ سریزه )

## دا کـــــــېږدۍ

دا د سارابې ټاټوبی بېړۍ چې سلگونه کاله په دې شگلنو او لمر وهلو دښتو کې ښکته او پورته ځی او راځی زما لپاره نه تمامېدونکې او بې انجامه مضمون دی ؛

دا د هغو سر گردانو پر گنو د خونړیو بریو، ترخو ماتو، دردوونکو مر گونو، لویو تباهیو او د هغه رټل شوی انسان سره د بې ساریو ظلمونو مضمون دی چې نه ماتېږي، نه ور کېږي او خپل انساني غرور د چا پښنو ته نه غورځوي ،

د کېږدۍ ژبه د بادونو ژبه، د تالندو ژبه، د باران ژبه او کله کله د بیابان په ارت گو گل کې د اوږدو چوپیاوو او ژورو تربږمیو ژبه ده ،

د هغې سر گذشت د یو سر گردان او رنځ ځپلی ملت سر گذشت دی چې له پیړیو راهیسی لوږو ، راځونو، دښمنیو او نه تمامېدونکو بې ثمره منـډوته ورشړل شوی دی ،

زما ترانې، سرودونه او داستانونه د همدې سارايي غمځپلی بېړۍ زمن او لونه دي او زه لا تر اوسه دڅوپو او غمجنو دښتو د همدې تورې نافرارې کـــېږدۍ شاګردیم ،

په دې باور چې دا توره بېړۍ به د بري او نیکمرغۍ ساحل ته ورسېږي او په دې تکیه چې رارسېدونکی سباوون به هغې ته سور رنګـ ور کړي او د تورو تنابونو پر ځای به پر هغې باندې د لمرزرین مزی وغځوی، خپلی سندرې په دې راویښېدونکو بیابانونوکې پیل کوم .

پربږده چې دا د غمونو توره بېړۍ د راختونکې لمر په وړانګوکې سره شي .

سلیمان لایق

(پیشگفتار چاپ اول)

# بجای مقدمه

این مجموعه زیبا گلدسته ای رنگین از اشعار سلیمان لایق، شاعر انقلابی و عصیانگر دوران ماست. افتخاردارم که سطری چند بجای مقدمه برآن می نویسم.

شرایط چاپ این اثر گرانبها و سطور محدودیکه برای این مقدمه اختصاص یافته است، بمن اجازه نمیدهد درین جا به تشریع دقایق ادبی لطیف آن، از نظرگاه زیبایی شناسی هنری بپردازم و یا ارزشهای اجتماعی آن را به معیار وظایف یک شاعر متعهد و مسوؤل چون سلیمان لایق، مورد ارزیابی انتقادی قراردهم. از سوی دیگر بهترین جوابگوی این دوسوال عمده و اساسی درباره اینکه: آیااستنباط شاعر از محیط طبیعي و اجتماعی اش چیست؟ وآیا مسایل مربوط به آن را چگونه مطرح وحل میکند؟ تنها و تنها خود شعر واثر اوست ولاغیر!

معهذا، این حقیقت را نمیتوان ناگفته گذاشت که سلیمان لایق این شاعر

پیشاهنگ کشورما، به دو زبان دری وپښتو شعر میگوید و در هردو زبان بطور کلی . اشعارش از لحاظ شکل (تصویر ذهنی و صورت ظاهری) ملی و تاریخی است او از لحاظ محتوی دموکراتیک و انقلابی. ملی و تاریخی بدین معنی که: تصویر های او از آوارگی صحرانوردان چادرنشین در دشتهای گرم و سوزان کشور تا رنجهای بیکران زحمتکشان اسیر و شلاق خورده کوهپایه های پربرف چونغر، از هیاهوی بزم آرایان کرسی پرست شهرهای ویران تا بساط ننگین برج نشینان مفتخوار قاعه های فیودالی در روستاهای ستمکش، از پیامبران خروشان اباسین تا به نبص آشنایان گردابهای آموازعقابان پامیر تا شیران خیبر و همه آنچه درین محدوده جغرافیایی در حال شدن و گذشتن بود و هست و در چارچوب مناسبات اجتماعی. اقتصادیمعین و فرهنگی ناشی از آن که دارای گذشته ء تاریخی خاص خود و ممیزات ملی مخصوص به خود بود و در زیر تأثیر قانونمندی عام تکامل اجتماعی تا مقطع زندگی شاعر رسیده است، با واقعگرایی انقلابی بصورت زنده و فعال ارائه و تمثیل می شود و آنچه مربوط بشکل ظاهری شعر لایق است ادامهء سنت های ارزنده و دارای نیروی حیاتی استادان کلاسیک شعر پښتو است که با نوآوری سالم، خلاق و تکامل دهنده مرحله نوین و جدیدی را در شکل شعر پښتو بنیانگذاری میکند و بدون اینکه به اصول انکشاف یابنده وقابل رشد زبان شعر در ادب پښتو پشت پا زند. باایجادگریهای خلاق درین زمینه، آنرا تکامل میدهد و ظرفیت هنری و تکنیکی بزرگتر و بیشتری بآن می بخشد.

و اما، محتوی دموکراتیک و انقلابی باین معنی که: سلیمان لایق، سخنگوی پرشور و انعکاس دهنده صدیق و راستین نیازها و آرمانهای توده های بزرگ اکثریت معروم جامعه ستمکشی افغانستان است و این نیازها و آرمانها را

بمعیار جهان بینی علمی طبقه کارگر - این ذره بین حساسی و دقیق شناخت علمی هستی و ماهیت، حال و آینده و رهنمای عمل رهای بخش تمام زحمتکشان وطنی و جهانی که در آن زندگی میکنند - می سنجد. باساس ایمان خلل ناپذیر او باین جهانبینی علمی بود که توانست افتخار امتیاز نشراتی و مدیریت مسوول مبارز و پر افتخار پرچم (ارگان حزب دموکراتیک خلق افغانستان) این پیشاهنگ طبقه کارگر کشور و تمام زحمتکشان افغانستان، این مبارز سرسخت و راستین راه تأمین حقوق ملی و دموکراتیک و ارمانهای انقلابی اکثریت بلاکشیده خلق افغانستان این ترجمان صدیق، بیانگر و مدافع بی ترس مبارزات جهانشمول طبقه کارگر بین المللی، جنبش های رهایی بخش ملی و جبهه جهانی نیروهای پیشاهنگ ترقی و انقلاب در سراسر جهان را حاصل کند.

سلیمان لایق، به‌عنوان یک شاعر با درک این مطلب اساسی و علمی که روبنای فاسد و از جمله پدیده های تأخرپسند فرهنگی، در مقطع خاصی از فعالیتهای هنری چون شعر و شاعری - خاصه در جامعه که از لحاظ نهضت ملی و اجتماعی هنوز در مرحله قشری و احساسی قرار دارد میتواند برای تحمیق توده ها و منحرف ساختن نیرو های جوانان و مستعد بفعالیتهای انقلابی سلاح مؤثر و زهرآلودی باشد. بحق و بجا بمبارزه با شاعران مزدور و درباری و خدمتگزاران فرهنگ برسوده و فاسد طبقات حاکمه و ستمگر و نظام طاعون زدهٔ فیودالی برخاسته، آنها را بشدت مورد حمله قرار میدهدو به‌آنها بی باکانه میتازد. بیائید این حقیقت را درین مجموعه و بخصوص زیر عنوان (**له درباری شاعر سره**) باهم بخوانیم و بدانیم که: او یعنی سلیمان لایق-این شاعر مردم، شاعر عصر و دوران رستاخیز توده ها،

برای رهایی مردم محروم کشور خود از بیهوده گیها و بی فرهنگیها، شاعران بزمها ـ بزمهای درباری ، بزمهای فحاشی ، بزمهای رقصهای عریان دختران بی حجاب و عشوه های دلیرانه بغرضی اطفای شهوات اهریمنانه ، بزمهای خمها و جامها ، بزمهای گناهها و هوسها ، بزمهای اقبال کاخها و ذلت وبرانه ها را بشدت محکوم میکند و باین می نازدو بجا می نازد که خودش ، یعنی سلیمان لایق ، شاعر توده های محروم ، فریاد غلامان ، رنج کارگران ، زحمت و ستمکشی دهقانان ، ادبار غژدی نشینان ، از پا افتادن مظلومان ، ناله ناتوانان ، اشک اسیران ، ننگ بزرگران ، مبارزهٔ کارگران و محبت و مؤدت خلقهای وطنش و سراسر جهان است . او میبالد که بااین کار : بر تودهٔ باروت آتشی مینگارد : آری ! او چنین کرده است . او چنین خواهد کرد . و او خود را پرچمدار سنگر زحمتکشان کشورش میداند و میگوید : تا زنده است درین موقف پابرجاست .

زهی تصمیم و ارادهٔ انقلابی ! پیروز باد لایق و آرمانهایش

۲ دلو ۱۳۵٤

کابل

بارق شفیعی

(اووم)

# فهرست



(اتم)

# يه خلکو خلکو

يه خلکو خلکو ، د وطن خلکو
يه وړيو تړيو ، د غرو و گړو
آزادي څه ده ، خپلواکي څه ده
يه درنه جارشم لوڅو لغړو

که وطن لوڅ وي ، که وطن وران وی
سمسوری څه ده ، آبادی څه ده
که لوټول وي ، که ډوبول وي
خپلواکی څه ده ، آزادي څه ده

بې روحه خاوره ، آباده نه ده
بې پوهی خلك واره بنديان دي
دا پښې لوڅې ، دا په نس وږي
واړه مريان دي ، ټول غلامان دي

که آزادي ده، که خپلواکې ده
د څو سړو ده ، د ټولو نه ده
که واکداري ده، که کامراني ده
د يوې ماني ده، د شپولو نه ده

آزاد هغــــه وي ، چــې په تن پټ وی
آزاد هغه وي چې په نس مـــــوړ وی
آزاد هغه وي چې واک يې خپــل وي
آزاد هغه وي چې په ځـــان جور وي

آزاد هغه وي چې کـــوريی خپل وي
په جهـــان ښوري لــــونړۍ وينی
آزاد هغه وي چې په هــــــر گام کی
هــم تلک وينی هم کــــړۍ وينی

يه وږيـــو تــږيو ، يه غــــــــلامانو
ليــږ رابيــدار شئ، درنه قربان شم
يه درواري شـــم، راگــــړندي شي
نه چې بوډا شم، نه چې ستومـان شم

راځئ چې يو شو ، راځئ چې يو شو
په گــډه مات کړو دا ځنځيــــرونه
راځئ چې پريکړو، راځئ چې وران کړو
مرغــــلين پړي ، تور زنــــــــــدانونه

له غــرو رغــــو نه، له دريـــــابونو
له سپيـــــرو دښتو، له تــورو خونو
سره راټـــول شئ، سره قــوت شئ
يه سيـــــلاوونو ، يه توپــــــــانونو

اوس د بادونـــــو مستو شپـــو کې
مـــا ته رارسی ستاسی غـــــږونه
د لمـــــر په وړانـــــګو جهان ته لېږم
ستـــاسی له قهره ډک فـــــریادونه

یه لــــویه ولسه ته په ځـــــان پویې
ته ستـــــر قوت یې، ته لـوی ملت یې
هم آزادي یې ، هم نیـــــکمرغی یې
هم عـــــدالت یې، هم کـــرامت یې

د تاریـــــخ کرښی ، د زمــــان پایی
په تا ډکیـــــږي، په تا غـــــږیږي
دا کـــــږې لاری، دا لـویې کندې
په تا سیخیـــږي ، په تا سمیـــــږي

که څوک قوي دی، خو تا قوي که
که څوک کمزور دی ، د تا کمزور دی
له تا بل شوی ، له تا جـــــګ شوی
که چتري اور دی، که چیرې شور دی

وږي دویم کابل ۱۳۴۲

# اوږده لار

په تــــــوله سیمه کې بــــاران اوري
آسمـــــــان ناري وهی وریـــځ ژاړي
زمـــــــوږ د مخه په یوه خـــــره باندې
یوه کــــــده لېږدي اوږده لار نغـــاړي

ځو زړې خــــــولی په بــــاران لندې
په خــــــرې پرتې او به ترې داري وهی
شپیته کـــــــلن بوډا له ښځی ســـــره
پسی روان دی سختــــــی لاری وهی

د ښځی غېــږ کې یو مــاشوم ویده دی
کـــله چې تالنـــــــده شی وریږدي
موریې راټینګ کړی چې دی وژاړي
سریې خپــــــل زړه ته برابر کېــــږدي

د باران ځاځــــــکې لکه غشی راځی
سوړ باد په ستر ګــــــو لکه ستنی لګی
د لار تېرې شــــګی په لــــــو ځو پښو
د چړو ځو کــــــو په شان سونی لــګی

د بـــــــوډا پوزی نه او به څـــــاڅی
باد چې پیاوړی شي ځګیـــروی کوی
کله چې و پـــــــرزي نو شــــکر وایي
بیا چې راپــــــــورته شي ستمی وهی

ای پردیســـــــــانو د وطن زمنـــــو
ستاسی مړستون او ستاسی ګور چیرې؟
چیرې خــــاپوړی چیرې لـــوبی کوئ
ستاسی روغتون او ستاسی کور چیرې؟

آیـــــا دررسی د زمـــــان سندرې
چې درست بشر یو کــــلی کور بولی
خو تا پخپـــل پراخ هېــــواد کې ولی
نه څوک شریک او نه خپل ورور بولی؟

باران خو ګـــورئ چې قطره قطره دی
چې سره یو شی لوی دریاب جوړ کړي
بیـــا چې په یوه لارهکې سر کېـــږدي
کاڼی پرې باسی او سیلاب جوړ کړي

په تـــــــوله سیمه کې بـــاران اوري
آسمـــــــان نارې وهی وریــــځ ژاړي
زمـــــــوږ د مخه په یوه خـــــره باندې
یوه کــــــده لېږدي اوږده لار نغــاړي

دغوایي ۱۳ کابل ۱۳۴۳

# پلی

د او چتـــــو غـــرو په منځ کې
په اسفالت ســــــړک روان و
مــلا دردمنه ، پښې چـــاودې
لاره لــــرې وه ستـــــومان و
لــــــړې پلنې وې په غـــــرونو
راروان یاغـــــــــې توپـان و

لاروي ته ور په یـــــــاد شول
په دې واټ کې خپل کـــارونه
د دې غــــــرو په مـــاتوو کې
خپـــــــلې هڅې ، زحمتـــونه
کلنــــــګونه ، زنبیــــــلونه
ســــاړه ژمی ، سخت کــلونه

کلـــکې پرښې مې کړې ماتې
سرکش غـــرونه مې هوار کړل
سین مې سیخ که خپل بستر کې
سیــــــلاوونه مې مهـــار کړل
ستـــر پلــــونه مې تیـــار کړل
توپـــــانونه مې ایسار کـــړل

په بريتـــــــــو د مســـــاپر کې
يو ه ترۍ مســـــــکا پيدا شوه
په ســــــاده زړه کې يې ويښنه
يو ه خـــــوب وړې تمنـــا شوه
«کاشکې بيـــا په دغو غرو کې
د کـــارونو سوه غوغـــا شوه»

« کاشکې بيـــا دغـــو دروته
پخـــــــوانی ملـــگري راشی
کاشـــــکې بيـــا په دغـــو لاره
لمـــــر راو خپـــژي رڼـــا شی
کاشکې بيـــا زمـــا غـــوبرو ته
د مـــــاشين سنــــــدره راشی»

«کاشـــــکې دغه ځيـــبره لاره
بيــــا زمـــــوبره د کـارو شی
په هـــــــر موړ او هره څـــوکه
مــــــاشينونه په نـــــــارو شی
داوطـــن او دغـــه سيـــــــمه
د جهــــــان د ننـــــدارو شی»
نا څـــاپی وربانـــــــدې راغی
يو مـــــــوټر له پاسو غـــرونو

شګکی ختې یې وربــــاد کړې

دی یې ویوست له اوبـــــونه

پنـــډیې ولـــوېده له شـــانه

رابیــــــــــدار شو له خوبونه

اوسیـــــــلی یې را اوچت شو

له ګـــــــوګله سره لمبه شو

په یوه تیــــږه باندې کیناست

په خپل ځـــان باندې اخته شو

وی یې «بیا دغه شین سترګې»[1]

مــــــــاته ولی په غصـــه شو

اې دغـــــــــرونو مساپره !

د هر چـــــا ده خپـــله برخه

تر څو دا آسمــــان ولاړ وي

و به نه وزې له دې نـــــرخه

څه اوچت څه لنـــــډوه یې

دغه تـــــوره اوږده کـــــرخه

دغبرګولی ٦ سالنګ ۱۳۴۲

۱ ــ شین سترګی – آسمان

# هیر شوی گل

د یوه خـــوږ له ځنـــګه ناست یم
ستـــــــړی شوی ، سا نیـــــولی
پښی تـــر دوړو لانــــــــدې پټی
وږی تـــږی ، لمــــــر وهـــلی

نظـــر وړمه اې خـــــوا دې خـوا
په پوټیــــــو په اغــــــــزو کې
کـــــــله لوېږي په کــــــربوړو
کـــــــله ښوري په وښــو کې

د میــــږیانو ځالی خــــــوا کې
سو اوږده پـــــــانه پـــرته ده
بـــــاد راوړې ، لمـــــــر وهلی
یېره شـــــوی ده ، ورســــــته ده

خــدازده خــدازده دغه پــــانه
چـــا راوړی له باغـــــــــونو
کــــوم شپــــانه په لښته پـوري
سیـــــــــلاوونو ، که بـــــادونو

او دا پـــــانه پـــــانه نه ده
دا یو گـــــــل دی رژیـــــدلی
بې باغـــــــوانه راشین شوی
لـــــکه ستـوری ځلیـــدلی

پســــــرلی راغــــــــوږولی
یــــوه شیبه یې خنــــــدولی
تنهـــــایي له پښـو لـــوولی
د جــــــوزا لمــــرو وژلی

ته بې سره د بیـــــــــدیا گـــله
خه بېــــــځایه زرغـــون شوی
د ســـــاره په چپـــــــاوو کې
تبـــــا شوی، زبــــون شوی

نه چـــــا باغ کې کېنـــــــولی
نه چـــــا زلفو کې ټومبـــــلی
یوه خــــــوله یې خندیــــدلی
بیـــــا دستی یې رژیـــــدلی

نه په مینه کې بدنـــــــــام شوی
نه قاصـــــد د کــوم پیـــــام شوی
نه وږمــــــه د کــــــوم مشام شوی
نه د بـــــاغ شوی، نه د بـــام شوی

نه بــــــــورا درنه تــــــــاو شوی
نه بلبـــــــــــــل درنه خبــر شو
نه ځـــــــو ځان چـــا درنه پریکړه
نه لښتــــــــی دربــــــــرابر شو

زمــــــــا په څېـــر لمـــر وهلی
وینــــــــه وچه، رنـــــګ بایللی
سر په خــــــــــاورو ایښـــوولی
بې ګنــــــــــاه له مینځه تـــللی

د بیـــــــدیا هیـــر شوی ګـــله
ته لا ښه یې، زه دې ستـــــــایم
زه کـه مــــــــرم که تبـــــاکېږم
یک تنهـــــــــایم، یک تنهـــایم

د چنګاښ ۱۵ کوهدامن ۱۳۳۹

# د نیوا پەغاره (۱)

نیـــمه شپه ده زه بیـــــــــداریم
خوب مې نشته ، خوب به څه وي
څـــــوک چې ما بیــدرده بولی
درد به څه ، آشـــــوب به څه وي

• • •

زړه مې غـــواړي چې ناري کم
د نیـــــــوا د سین په غــــــاړه
لیـــــــــونی په ځان خبــر کړم
پې کـــم خــــــلاصه خپله غاړه

• • •

د اسحــق په کـــــــلیسا کې
لا جــــــاري د مـــزدور وینی
دا خــــــوزه گنـــــاگار نه یم
چې ته ړونــــــدیې نه یې وینی

• • •

دلــــته هلته ، بنکــــته پورته
توپــــانونه ، توپــــانونه
لا خوځېــــږي، لا جـــګېږي
بحــر بحـــر ، غرونه غـــرونه

• • •

لا د سرى د میـــدان خواکې
پورته کېــــږي فـــــریادونه
په نیــــــــوا لا روان دي
د تاریــــــخ انقـــــلابونه

• • •

دا زانــــــــګو د انقلاب ده
زږه ځـــــــــاله د بازانـــو
نوی کــــــور د نویو خلــــکو
امیــــــد ځای د نامینـــدانو

• • •

اې پېغلـــوټو اې ځــــوانانو
اې سپین پوستو ، اې تــور پوستو
سره یو شئ ، سره یـــــو شئ
اې تور خټــو ، ژېړ ویښتـــانو

چې ځـــان وینمه شرمېــــږم
ژبه گـــــونگه ، سر بې شوره
ژونـــد بې نوره، زړه بې عشقه
پښې مــــاتی، مټ بې زوره

• • •

اې د ژونــــد خــوږه نسیمه
یو څــه زور را ، یو څــه اور را
ننه زړه کې لمــــر د عشق را
په دې لمـــر کې ګرم کور را

• • •

یا تــر خه را ، یا خــــوږه را
یا شـــراب را ، یا کــــوثر را
یـوه لحظه کې ، یـوه شېبه کې
یـــوه لمبه را ، یـو شـــرر را

• • •

زمــا زړه ته لــــوی محل را
زمـــا کـــور واړه جهان که
څوک راوړونه که څوک خوندې
یو وجـــود راته انســان که

زمـــا نظر لـــکه د بـــاز که
پلن په غـــــرونو، خپور په تړو
زمـــا ليـــمه لـکه باران که
هــم په لــوړو، هـم په ځوړو

• • •

مـــاته هسې ستـــر گې راکه
چې سپين ووينـــم په تور کې
مـــا له هسې توفيـــق راکه
چې ايـــره نشم په اور کې

• • •

د مظلوم او ښـــکې درياب که
تژې او چت که توفـــــانونه
پرې خوره بريښنـا د عشق که
ترينه جـــــوړ که جهانونه

• • •

يو جهـــان د انســـــانانو
چې کې خـــوار او امير نه وي
چې ځگيروی ترې نه پورته نشي
څوک د بل چـــا اثير نه وي

اې د ژوند خوږه نسیمه
لېږ راغبرګ شه په بازانو
د دې دښتو په خوب وړیو
د دې غرو په لیونیانو

• • •

یو ځل ویښ که جګې جګې
دا زمری له دې ځنګلو
یو ځل پورته دا پردې که
له خیبر او له ګوملو

• • •

اې د ژوند خوږه نسیمه
ولې چوپ یې لېږ ګویا شه
خیر که موږه دوزخیان یو
لېږ پخلا شه ، لېږ پخلا شه

د جولای ۱۰ لنینګراد ۱۹۶۴

# ژیړې شپې

هـــره خوا گـــلان خزان ځپـلي دي
باغ کې د بلبـــــل ځاله ویـــرانه ده
وریځـــو بیا د غـم ژړا سر کړې ده
دا د غـــم نـــړۍ په غـــم ودانه ده

• • •

بـاد د ونو پانـــــو کې نارې وهي
منې یې غــــوړو کې څه ویلي دي
سترگې د فلـک له وینو ډکې شوې
گـــوره زمـــانې بیا څه کړلي دي

• • •

پاڼې د چنــــار لــــکه زما هیـلې
ژیړې ژیړې ښــکاري رژېـدلې دي
ژاړي د تاکـــونو لوخو څانگو ته
ستــرگو کې یې وینې تو کېـدلې دي

• • •

هالته د زړې کـــــــلا په وره باندې
ګونګـ بیـــا زړې شوې ترانې وايي
ګـــوره په دې شپه کې دا زړه بـــــلا
بیـــا د چا افسون ته افســـــانې وايي

● ● ●

ناست یمه ، زنګیـــــږم په غمونو کې
تـــــوره شپه روانه ده منـــــزل وهي
پـــورته د آسمان په لرې سیمـو کې
ویځـــو کې یو ستـــورې ځل وهي

● ● ●

کـله د کزتې په تور لوګجن زړه کې
وخـــــاندي یوه هیله راته ورانه شي
څو چې زه له خـــوبه سترګې پاڅوم
بیـــا هغه ویـده شي پښیمـــانه شي

● ● ●

وړانګې د سـکروټو د کوټې په چت
رېږدي لـــکه مینه زمـــا په وینو کې
غـــم په توره شپه کې اسیر کړی یم
خوځي مې په پـــلو او په رګونو کې

● ● ●

اې د مني ژېړ او کـــــرار شپـــــو
وخوځېږئ، لرې شئ او تېرې شئ
پرېږدئ چې د واوره ورستن پـلنه شي
پټې شي تر واوره لانـدې هېرې شي

• • •

وځــلېږه ته اې مقـــدسه لمــــره
رنګ کړه د سبا د پسرلی ګـــلان
دغه غمځپـــلی خـــاوره ګرمه که
وخنــــــدوه دغه ژړنې آسمــــان

د لړم ۳ کابل ۱۳۴۵

# د ښکو کور

څه ده د ژونـــد د ماشومـــانو آرزو
چې سپېرې خـاورو کې خوسی وهي
له تشو شـــــــگو نه مـانۍ جوړوي
گټی رابـــــــــــاسي او ستمی وهي

• • •

اې د کـــوڅو خورو ورو مـــلگرو
رائځئ چې نوې لــــــــوبه ساز کړو
دغه شـــگلن کــــورونه ونـــړوو
ځـــان له دې خـاورو بې نیازه کړو

• • •

دغه د شـــــگو ناتمــــام کـــورونه
زور د سیـــــلاو او زلـــزلو نلري
دا تـــوري خاورې، دا فاني باغونه
ارزښت د جنـګ او د دعوو نلري

• • •

راځئ چې هیـــــلی ځه رنګینی کړو
راځئ چې نوې تـــــرانی ووایـــو
د زمـــــانی په دې زړو غــوږو کې
د ژونـــــدون نوې افسانې ووایـــو

• • •

مـــــلګرو اې خورو ورو مـــلګرو
له دې ویـــــرېږم چې ناښـاد به شئ
د زمـــــــانې د توپـــــانو مخی ته
که سره یو نشئ بربـــــــاد به شئ

د تلی ۲۰ کابل ۱۳۴۳

# وصیت لیک[1]

کــــله چې مړ شمه یــــارانو مـــــا
تر تورو خــــاورو لاندې پرې باسئ
په ډېر پـــراخه او ناپــــایه بیــــدیا
د خوږ یو کراین زړه ته مې ښکېباسئ

هسې چې ارت او هــــوار دښتــونه
درست دنیپـــــر او د هغه څنــــډې
ښــکاري او وایې وري زما غوږونه
د سین غــــــورکې او د څپو منډې

پرې باسئ مــــــا او تاسې پاڅېږئ
بندونه ماتې کړئ، کړۍ وشرنگوئ
د دښمنــــــانو په ناپاکـــــــو وینو
فتـــــح او برى ملــــگرو ولمبوئ

کــله چې نوې کــورنۍ جوړه شي
هغه چې ستـــــــره او آزاده وي
ستـــــاسې په نرمه مهـــربانه ژبه
یوه شېبه غـــــواړم زمـــا یاده وي

د اکتوبر شپاړسم ۱۹۶۷

---

۱ ــ دا شعر د اوکراین د مشهور شاعر تاراس سوچنکو اثر دی.

# سرګردان

خوځـــــمه دژوند له قـــــافلو سره
زه یو دمــــــزلونو سرګــــردان یمه
خـــــدازده دغه لاره کـــوم پلو ته ځي
زه داهســـــې چـــــاپسې روان یمه

• ● •

څه وایي د ژونــــــــد مساپـــرانو ته
دا د کـــــــــاروانونو دغمو جـــرس
کومې خوا ته ځي څه یې په زړه کې تېي
دابیــــــابان ګرده لیـــــــونی هوس

دوړي ٦ کابل ۱۳۳۸

# کیږدۍ

هالته د و چ ډاگ په لمنه بانـــــــدې
د منی بــــاد ته یو کیـــږدۍ ریږدي
په دې کیږدۍ کې یو رنځوره ښځه
اور بلــــــــوي او له درده ژړیږي

د کمیسه له تــــــــرازو څـــــخه یې
د بې پنا صورت پوستــکی ښکاري
د وجـــود غوښه یې رنځور خوړلی
په هر اندام کې یې هډوکی ښکاري

یو ډنگر سپی گرد له کیږدیه گرزي
یوه زړه اوښه په اغـــــــزیو چوده
د خـــاورو دوړو کـــاروانونه روان
د مـــازیگـــر ستـــرگه په کېنستو ده

دغه کیـــږدۍ دا مســــــاپره بیړۍ
چې لارې نغــــاړي او مزلونه وهي
کومه خوا درومي، چېرې لاره کوي
د څه لپـــــــاره واټنـــــونه وهي

سلیمان لایق

اې تــورې تعــورې د ساره بیـــږۍ
د بې وطــــــنه پوونــــــده وو یاره
وایه چې کـــــــله به منزل ته رسي
ستــا د ستـــومانه ژوند اوږده لاره
د تلې ۲۵ کابل ۱۳۴۳

# چونغرته !

(۱۲) ترانه

پرون پردیســــــــــو اواره وریځو
چونغره، غـــوږ کې تا ته څه ویل
له کــــومه رنځه یې شـــکوه کوله
چې کړې شپه یې ستـــا پښنوته ژړل

• • •

دا ابدي پردیســان چېـــرې درومي
د دوې د منـــزلو سرانجام به څه وي
ولې په غـــرونو، په رغونو ګـرزي
ددې ستومان کاروان مرام به څه وي

• • •

کـــله اسمان کې داو ښانو غـوندې
غـــلی خوځېـږي او منزلونه وهي
کـــله وحشي شي، توپاني شي پسې
په غــرو وردانګي یرغـــلونه وهي

• • •

کــله شي ښکته د چتـــــریو په څیر
د غـــــرو لمنـــو ته خیمې ووهي
کــله هیلۍ غونــدې د سین په اوبو
ښــــکته شي ولامبي غوپې ووهي

● ● ●

کــله د غرو پڅو کو څو کو بانـدې
کتـــار کتار شي کـــارونه تړي
کــله شفق کې سره لمبه شي د اور
سپینو مالـــوچو کې اورونه تړي

● ● ●

کــله د شنه اسمـــان په پــاکه دړه
ایرانوونـــــکې تصـــویرونه باسي
کله سپـــوږمۍ ته پالنګ وغوړوي
خپـــل تږې تږې ارمـــانونه باسي

● ● ●

کـــله د واورو انبـــــارونو څخه
لمن راډکه کــــړي توپــان راولي
کله بیا خـــاندي او سندرې بولي
پسرلی ورو زي او ګـــلان راولي

● ● ●

کله تر پښو کړي بيا سينو نه غرونه
په پراخ اسمان کې سرگردان گرزي
نامعلوم لوري ته مزلونه وهي
اوړي را اوړي او ايران گرزي

• • •

چونغره زه هم ستومان شوى يمه
له دې بېخونده ساړه ژونده څخه
رائحه په گڼه باندې ولټوو
لاره د تېښتې له دې بنده څخه

• • •

د دغو گرزندو وريځو په شان
ازاد پرواز، ازاد سفر غواړم
چې ما پراخو اسمانو ته بوزي
هسې شهپر، هسې وزر غواړم

• • •

څرخم به، رغړم به بهېږمه به
تل به ازادې ترانې وايم
د اسمان ستورو او پيرونو ته به
د سړې ځمکې افسانې وايم

دليندۍ ۱۴ کابل ۱۳۴۱

سليمان لايق

# چونغرته !

(۱۳) ترانه

اې د بلا او حـــــادثو چونغـــــره
بیا دې په ږیره باندې سپین ښـــکاري
نه نه په غـــــاړه دې د اورو امیـــل
لکه د سپینـو لونـــــګین ښـــکاري

• • •

د سپینـــو واورو تر دلیـــــو لاندې
عجیبه درونـــد او ښایسته ښـــکاري
څومـــره مغـــرور او بې پروا یې ولاړ
له درست جهـــانه وارسته ښکاري

• • •

ستایې په څه چې سین کنـــګل نیولی
او کب نیوونکې کبـــان نشي نیوای
یا رنځـور غاړی او کمـــزوری بوټیه
په دغو واورو غـــــرو اه نسي ختای

• • •

ستاپې پې څه که ستا په لـوږو ځوږو
واورې له بـــاد سره نځـاوې کوي
يا خواره مور خپلې رنځورې لور ته
شو گيـــرې گالي او ژړاوې کـوي

• • •

ستا يې پې څه که للمي کـاره بزگر
لـرگی او بوټی د خپـــل سون نلري
يا يې ماشوم چيرې گـــريوان گرزي
مـــوريې گنـډلو ته يوه ستن نلـري

• • •

ستا يې يې څه که مساپر مــــزدوران
لخ کـــاره پاتی دي او کـــور نلري
يا هغه مـــزی بې شعوره سود خــور
پخ چـا زړه سوی نلري، ورور نلري

• • •

ستا يې پې څه که دوطن حاکمـــان
خلـــکو ته گواښي او بېگار چـلوي
په هغو لارو چې خـــر نشي ختـاې
په انسانـــــانو باندې بـــــار چلوي

• • •

هو ته همـــــداسې بې شعـوره اوسه
ستاېې زمـــــــوږه له دردو سره څه
تا ته د واورو خـــــولۍ تاج برېښي
ستا يې له لـــوږو او مرګـــو سره څه

د مرغومي ۱۰ کابل ۱۳۴۱

# چونغرته !

(۱۸) ترانه

اې د ډبرو تـــــور دېبې چونغـــــره
ماوې چې ویښ دې کم ملګری به شي
د ستمـــــــګرو د سر کــــانی به یې
د زیارستونــــکو د زړه ځوری به شي

• • •

ما وې چې ویښ دې کم ، مرچل به شي
د دې یــــــــاغي زړګی تسل به شي
زمـــا د سرې مینی محـــــراب به شي
ژونـــد به شي، منــــډه او تکل به شي

• • •

ماوې چې ویښ دې کم، عیسی به شي
دې ویــدو خــــلکو ته به سا ورکوي
په سږو سمڅــــــو کې به اور بلوي
تیــــارو دروته به رڼــــا ورکوي

• • •

ما وې چې وینې دې کم، جهان وینښ شي
ته لا ویـــــده یې خو جهـــان وینښ شو
دغه کــــارګر، دا هستوونکې جهان
دا د هستۍ جـــــوهر انسان وینښ شو

• • •

اوس که ته نه پاڅېـــــږې، مه پاڅېږه
په کروندو کې دې دهقـــان وینښ شو
ما لا د یوې برینښنـــــا سوالونه کول
خو داسمان په زړه کې توپان وینښ شو

• • •

اوس راوینښ شوی د پېـړیو غـــــــلام
په مړو رګــو کې دې ژونـدون خوځي
له هر کمــــــــــره د عشـــق اواز وزي
په هــره لویشت کې نوی یون خوځي

• • •

اوس راجګ شوی دی جهان جوړوي
دا زیار ځپــــــلی، رټل شوی انســان
داغ د پرون ربړ ګـــــــالونکې اسیـــر
دا د سبـــــــا د کائنـــــــاتو سلطـــان

د چنګاښ ۲۵ پلخمری ۱۳۴۷

سلیمان لایق

# چونغرته !

(۱۹) ترانه

دغه راوري د بـــــاران ځـــــاځکې
که له خوږمن زړه د توپان ځـــــاځکې
یا ســـــــره ایشی په دره دره کـــې
هم د باران ، هم د توپـــان ځـــــاځکې

● ● ●

که سره یـــو شي درانې قطـــــــرې
وطــــن به واړه شي ځپـــې ځپـــې
نرمې اوبه به شی تېـــــرې تېـــرې
د گــــــلو پاڼې به چـــــړې چـــړې

● ● ●

هلته دغرو په ځوکو ځوکــــــو باندې
په تورو ویځــــــو کې بریښنا ځغــلي
د خوب ځپـــــلی ښار په خښته خښته
د ژونــــــد د تالندې غوغـــــا ځغــلي

● ● ●

د پسرلی د بـــــاران ښکلې شرنګی
د امیـــــدونو ترانې خـــــوروي
د زړې خـــاورې په ستومان زړه کې
زیـــری د نوې زمـــانې خوروي

• • •

په مـــړه بیـــــدیا به پسرلی راشي
زه په چمن کې نـــــوی ژوند وینـم
مـــړاوي ګـــلان به وزر وغوړوي
زې له سبـــا سره پیــــوند وینـم

• • •

چونغــــره وغـــړوه وغـــړوه
نوی انســـان ته د سبا ســـازونه
پرېږده چې واوري دغه نوی انســـان
د خپـــل وطن د مستقبـــل رازونه

• • •

د بـــاران غږ د امیـــدونو ســـرود
د خــــورو خـــلکو د ننګونو سرود
پرېږده ویـــــده غـــوږو ته وغـږوي
د زیارایستونـــکو د جنــګونو سرود

• • •

چونغــــره اې زما د ارمــــــان چونغره

زمــــــا د شعر قهـــــــــرمان چونغــره

دې خپل گــــــوگل ته خو اېږ ننه باسه

یو څه زمـــــا یاغی توپـــــان چونغـره

• • •

پرپږده سږې ډډې دې گـــرمې کړي

دغه شعـــــــــرونه ، دغه سرې لمبې

پرپږده د غــــــوږ پردې دې ولړزوي

د وطنپـــــــــال زړه ابــــــدې نارې

د تلی ۱۳ دهانهءغوری ۱۳۴۸

# چونغرته !

(۲۱) ترانه

چونغـــــره ستــا په تړو تړو بانـــدې
زمـــوږ داوښـــکو بارانـونه اوري
خـــو دا درحم اوبه نه دي گــــوره
په تا دخــــــلکو غضبـــونه اوري

● ● ●

ستــــا په درو کې بیا د کـــار پرگنې
د حاکمــــــانو شــــلاقونه گـالي
د تا له څوکـــــــو تر لمنې پــورې
د څو لیـــــــوانو یرغــــلونه گالي

● ● ●

د تا هر کــــــانې د بزگـــرو د سر
د تا هر اغــــــزی د هر بزگر د ځگر
د تا هر اور د بېــــــوسانو په کــور
د تا هر سیـــــل د مـــزدورانو د در

● ● ●

د تا لمـــن د بې لمنـــــــــــو لمن
د تا هستی د بې حاصــــــــلو هستی
د تا غوغـــــا د نازولو غوغـــــــا
د تا مستی د مستبـــــــــدو مستی

• • •

د تا ځوځـــــان د بزګــــــرانو برخه
د تا غنــــــــم د نازولـــــــو شومه
په هـــــره لاره کې دې ایښی تــلک
په هـــــره پوله کې دې لـــــکه لومه

• • •

د تا خــوراک د بزګـــــــرانو غوښه
د تا شراب د زیارایستونـــــــکو وینه
د تا امیـــــــــل د دوی د رغوو پـولۍ
خـــــو د تا مینه د ظالمــــــــــو مینه

• • •

اې د ظالمــــــــو مستبـــــدو کوره
ایــا زنـــــــګونه د زمـــــان درځي
مــــــوږه یې وینــــــو په رڼو سترګو
چې ستــــــالمنې ته توپـــــان درځي

• • •

نن یا سبـــــا سرې بخـــونې وریځې
ستـــا هرې پرښې ته پیغـــــام راوړي
دغو بز گـــــــــرو دربـــــــدرو ته
زیری د جنـــګ او انتقـــــام راوړي

• • •

بـــــــاد د غضب به په دره دره کې
بولۍ د ولس د ویښېـــــدو خوره کې
دا د ظالمــــــــــو د دوران نښې به
واړه له بېــــــخ او له ریښې چپه کې

د مرغومې ۱۰ پلخمري ۱۳۴۹

# چونغرته !

(۲۲) ترانه

اې د شعـــــرونو او الهــامونو چونغره
بيــــا مې مغــــزوکې ترانې خوځې
ستــــا د کمـــــرونو په قدم قدم کې
د ژونــــد د میني زلــــزلې خوځې

● ● ●

گــــلان خپاره کړه چې بلبل دې شمه
خپـــله مستی کې یو غوغــا خـوره کم
بې روحــــه ترو ته دې ســــا ورکم
په مــړو رگـــوکې دې رڼا خـــوره کم

● ● ●

ستـــا په هر مـــوټی کې د ژونــد سرود
له ورایه وینـــــم چې ثپـــــان خوځي
ځـــــکه زما په لیــــــونی شعر کې
د ځـــــوانو هیــلو یو جهـــان خوځي

● ● ●

گلونه وغوړوه جار دې شم
شپې د بهار دي چې بهار شي مست
خیر دی خیر دی که تږی یمه
پرېږده چې تنده او خمار شي مست

• • •

پرېږده چې خاورو ته دې وغږوم
د ځوانی مینې ترانې ترانې
په مړو هډونو کې دې وخوځوم
بې حرکته زمانې زمانې

• • •

وریځې رابولمه چې واوروي
ستا په کمرونو د رحمت باران
بریښنا به وباسي په وچو تړو
زما د مینې ابدي عنوان

• • •

خپلو شعرونو ته به ژوند ورکم
ژوند ته به نوی شانې خوند ورکم
ازورده هیلی به پخلا کمه بیا
مات شوی زړه ته به پیوند ورکم

• • •

چونغـــره، اې زمـــا د شعر چونغـــــره

خـــــو چې نړۍ وي ته ابـــــــاد اوسه

د زمـــــــانې له چپـــــــــاوونو شخه

تـــــــل په امـــــــان اوسه، ازاد اوسه

د چنګاښ ۱۳ کابل ۱۳۴۸

# چونغرته !

(۲٦) ترانه

چونغـــــره بیا سپیني یـــــاغي وریځی
کینښودې ستا په ځېږو شونډو شــونډی
دا د اسمـــــــان د حـــوادث لـــولی
دا د توپـــان د تنـــدرونو کـــــوندی

● ● ●

بیـــــایې شـــــلولی دی جـــامې ته تنه
چاک د حـــــریر نه یې پنډۍ ښــکاري
په اوسیـــــــلو کې یې د تیـــو کـــوبۍ
لـــــکه څپــو کې چې بېړۍ ښــکاري

● ● ●

څومــــــره وحشي ده د اسمــــان پیغله
دا د حـــــــریر د پاغـــــــوندو جوړه
دا د سپوږمیـــــــو له مــــــرمرو وتی
دغه د ستـــــــــــورو له ایرو جــوړه

● ● ●

دواړه مین یو خـــــــــو د دوو لارو
زه د ننـــــــگونو، ته دنجـــــونو مین
ته د لیـــــــــلی د اننـــــگونو مین
زه په لمبـــــو چې د جنـــگونو مین

● ● ●

ته د اسمـــــان د سپینو نجـــونو عاشق
د رڼو شپـــــو دوصالـــــونو عاشق
زه د سرې ځمــکې په مړه گوگل کې
د زلـــــزلو او توپـــــانونو عاشق

● ● ●

ته د ښـــــکلا او مکیـــــزونو لیـوال
زه د لمبـــــو دیرغــــــلونو لیـوال
ته تربږمۍ کې د خوبـــــــــونو مین
زه په تیـــارو کې د جنـــگونو لیـوال

● ● ●

تا زړه بایـــــللی د اسمـــــان په مینه
مـــــا زړه بایـــللی د انسان په مینه
ته له خپـــله عشقه ټول جهان جاروي
زه چې ژونـــــدی یم د جهان په مینه

● ● ●

ښه شوو چې ایل شوو دا یاغي عشقونه
ښې شوې چې تم شوې دا ناتمه منډې

ښه شوو پوره شوو دا زموږ ننـــــګونه
ښې شوې عبث شوې د اسمان ملنډې

دلیندۍ دوهم ۱۳۵۳

# چونغرته !

(۲۷) ترانه

چونغـــــره اوس دې په خـــورو درو کې
زمـــا د گـــرمو چیغـــــو زور ولید ؟
بیـا دې په سترگو د زیار کښ انسان کې
د راویښ شوی ژونـــــدون شور ولید ؟

● ● ●

بیــــا خو دې ولیــــده چې وسپـړېده
په مـــــړاوي گل کې ویـده شوې خندا
د زمـــــانې سترگـــو کې وبرېښېــده
زمـــــوږ د تورې غـــلی شوې برېښنا

● ● ●

ستوري دې ولیـــدل چې وځځېــــدل
ستـــا په اسمـــــان لکه په گلـو پرخې
سپوږمۍ دې ولیــــده چې وې ایستلی
ستـــا په لمن د سپینـــو زرو کـرښې

● ● ●

غـــــرونه دې ولیــدل چې ولــړزېدل
درې دې ولیـــــدې چې وخوځېـدې
لبـــــوان دې ولیدل چې وتښتېــــدل
رمې ددې ولیـــــدې چې ونښېــــدې

• • •

اسمــــــان دې ولیـــــده چې وغوړېده
وریځې دې ولیـــدې چې وځــړېدې
سیـــــلاب دې ولیـــــده چې وخوځېده
ځپې دې ولیـــــــدې چې وثرخېدې

• • •

وطن دې ولیـــــــده چې پاڅېـــــــده
خلک دې ولیــــدل چې وښورېـــــدل
دوستـــــان دې ولیــدل چې وموسېدل
دښنه دې ولیـــــــدل چې وژړېــــــدل

• • •

دا د راتلـــــــونکې رسېــــــدنکې توپان
د سر اغـــــــاز او د راتـــــلو نښه دې
د دې وطن په دردېـــــــــدلی زړه کې
د سره ژونــــــدون د وینښېدو نښه دې

• • •

دا به له هسکه تندرونه اوري
دا به په څمکه سرې لمبې خوځي
زمور د سرو ننګو په فخر کې به
د ټولو خلکو پل او پلی خوځي

• • •

اوس خو دې ولیدل چې وغورځېدل
له غټو خرو نه طلایي زینونه
د طبلو په سوړو ننوتل
بېرته یې واچول په ځان ځلونه

• • •

ما چې سندرې وې دغرو اغزو ته
هغو اغزیو اوس ګلان راوړل
هغه د ګلو د ژوندون دښمنان
د قبر غاړې ته زمان راوړل

• • •

چونغره، اې د افسانو چونغره
زما د ګرمو ترانو چونغره
اوس خو تازه که دژوندون سازونه
د ویښېدونکو ولسو چونغره

د چنګاښ ۲۸ کابل ۱۳۵۳

# شاعر ته[۱]

(لومړی پیغام)

اې د بنـــــدو او زولنـــــو شاعره
د وړیــــــو تنبیــــــو پښتنو شاعره
لادرکې شته دې څه سکروټې که نه
د پرونیــــــــــو سرو لمبــو شاعره

● ● ●

تسا په سندرو اوس کامونه خوځي
گــوره چې غلې نشي ، هېــر نشي
زه د اسمـــان لـــــوبه بدله وينم
گـــــوره له خپله هـــوډه تېر نشي

● ● ●

له هـــــر اوازه سيـــــلاوونه وزی
له هـــــره شعره زلــــزلې خوځي
له هـــــره چيغې د مــــــردانو سره
د ژونـــــــد او هيـلو قافلې خوځي

● ● ●

۱ ــ له شاعر نه مراد اجمل ختټک دی .

وچه بېـــدیا به سره گلونه راوړي
په هدیروکې به خنـــدا خوره شي
د دې تیارې ځمکې په ګېده کې به
د پښتنې توژې بریښنا خـــوره شي

• • •

په لوړو څوکوتورې وریځې خوځي
په درانه نس کې سیـــــلاونه لري
په غصه شوي دردېـــدلی زړه کې
ځـــوانې څپې او تنـــدرونه لري

• • •

د هـــــرې تالندې اواز کې ګوره
د نوي عصـــــر پیغامـــونه لېږدي
د غـــرو د سره افــق نه پورته ښکته
د نوی ژونـــد انقـــلابون لېږدي

• • •

د هنـــدوکش د باران هـــره قطره
مخ په اټک او ابـــــاسین درځي
دلته د تللـــــو بـــــله لاره نشته
هر څه چې خوځي لکه سین درځي

• • •

د سحر باد چې ستا باړخو مچوي
دغه زمـــــوږه او سیــلی دي کنه
ستا د زړګی دا غـوټه غـوټه ویني
ګلــــونه زموږ د پسرلی دي کنه

• • •

پام کوه ګوره درنه مړا وي نشي
دا به باغـــونو ته رنګــونه ورکي
د ښتنـــــو د اوربل نـــذريې که
چې عاشقـــانو ته ننګـونه ورکي

• • •

د تا مستی د هنـــــدوکش ترانه
زمـــا نځا د اباسین سنــــــدره
راځه چې جوره کړو په دواړو وزړونو
یوه غــــوته شوې ښتنې خبـــره

• • •

راځه چې نوې پیـــالی وکړنګـوو
راځه چې خـــلکو ته سوما ورکو
راځه دې ورکـــو دربـــدرو لره
جـــذبه د مینې او وفـــا ورکو

• • •

راځه په غــرو کې ازادي وینښه کو
راځه چې خاورې ته احساس ورکو
راځه په شپولو کې بریښنا خـوره کو
راځه چې کـــــانو ته حواس ورکو

● ● ●

پام کوه له خلکو نه بیعت مه غواړه
راځه چې مـوږ دوی ته بیعت ورکو
راځه د خـــــــلکو د عزت لپـاره
په قربـانۍ کې خپــــل عزت ورکو

● ● ●

ستا زړه که سوی، زه یې لا سوځم
ستــا فریادونو ته طاقت ورکـــــوم
زه سور انــــــګاریمه داغونه ږدمه
د غیــــــرت چیغو ته قوت ورکوم

● ● ●

هره څپه چې په لنــدي کې خوځي
د تا د ګــــرمو وینــــــو شور ښیي
هر نوی بـــاد چې په وطن خوربږي
د تا د ځــــــــوانو هیـــلو زور ښیي

● ● ●

څوک وايي دا چې ته شعرونه ليکې ؟
څوک وايي دا چې ترانې جوړوې ؟
شاعر خو هسې ښکلې حسن ستايي
ته ستر انسان يې زمانې جوړوې ؟

• • •

څه دی دا ژوند، دالندکې اوسيلی
چې ديوې گرمې چيغې زور نلري
راځئ دا زړونه څپو ته وغورځو
که چپړې اور نلري، شور نلري

• • •

گوره تياره دې وارخطا نکړي
اجمله شپې پسې خو لمر راځي
زه چې د خپلو پيغلو وروځې گورم
ما ته په ستر گو کې خنجر راځي

د کب ١٦ کابل ١٣٤٤

# شاعر ته

(دوهم پیغام)

اې خوږه یاره د غمـــــــــونو اشنا
د خوادثو د کلـــــــــــونو اشنا
ته د اټک د ســـــــر کشیو ګواه
زه د پامیـــــــــر د توپانونو اشنا

• • •

غیـــږه که خلاصه چې اشنا راځي
کاروان د مینې او وفـــــا راځي
ستاسې د تورو د جګـــړې ډګرته
پیغـــــام د فتحې د سبـــا راځي

• • •

د غـــــلامانو د ځنځیـــر سازونه
زموږ په غـــرو کې ولولی خوځوي
دا نوی نوی تقـــــاضې د زمـــان
د ولسونو رګ او پلی خوځـــوي

• • •

شعـــــر چې لیـــکمه لمبې وهي
لکـــــــه امــو شي او څپې وهي
دا د بیلتون په اور کې سوی زړگی
چې تا رایاد کمــــــــه ناري وهي

● ● ●

زړه رانیږدې که چې څه اور در کم
د شور د پاڅه نـــوی شور در کم
مټ له پــولادو سره وجنگـــــوه
زه به دې جنګ ته نوی زور در کم

● ● ●

په دې تیـــارو پسې رڼـــــا راځي
میـــــــدان د تور و نن سبا راځي
د بیـــــــلتانه د تــورو لړو تر شا
شغـــــــله د سترگو د اشنا راځي

● ● ●

د نړۍ بــــــاده مستــــانه راځه
زه د مستۍ څو ارمـــــانونه لرم
د لبـــــــونیو د محفــــل نذر ته
په زړه کې پټ څو پیغــــامونه لرم

● ● ●

اې تر ايرو لانــــــدې مخفي اوره
لېږ مې رسوا که زه رســـوا ښه يم
پټه نغمه يم د فطـــــرت په زړه کې
تردې يــــــوه چيغه بـــرالا ښه يم

• • •

مــا دا کمکې غمونه ـ نه غموي
زړگيه مـــــــا لره لــوی غم راکه
سر مې کوچنی صنم ته نه کوزيږي
يو بې همتــــا غـوندې صنم راکه

• • •

راته ښکارېږي چې اوس لمر خېژي
د شپې لمنې کې رڼا ښـــــکاري
د زړه کړکۍ چې څنگه خلاصه کمه
منظر د نوې پښتنونخـــوا ښکاري

• • •

د ازادۍ د مــــــوزيک مستې څپې
لـــــکه سيـــلاب په پښور درځي
غــــــوړونه پرانيــــزه دردمنه اشنا
گـــوره چې څومره زورور درځي

• • •

دلته هاتیـــانو ته کږې لوېـــــدلی
خو اوس مستی کوي کږې ماتوي
د ازادۍ نه راوتـــــــلی فـــریاد
دا پرونۍ زړه نـــــــــړې ماتوي

● ● ●

د هنــدوکش لمن کې نوي ګلان
راغــوړېدلی دي وږمې خـــوروي
د سږو غـــــــرونو په ذره ذره کې
راغـــــورځوونکې زلزلې خوروي

● ● ●

ستـــا چیغې اورم خــو تر ور نه یم
ځـــــکه زه ګورم چې دوا درځي
د تورې شپې له تیـــارې مه وېرېږه
سپېــــدې چاودلی دي سبا درځي

دزمری ۱۲ کابل ۱۳۴۶

# د کنړ سین

یه مسته مسته ، کنـــــړه مسته
په ځــــــګو پټه ، په تګ بد مسته
پیــړۍ تیرېږي ته ورته نـــــاځي
اوړې رااوړې قــــــرار دې نسته

• • •

په سر دې درومي سپینکې ځګونه
لــکه په شنه کې دوریځـو غرونه
هسې ښـکارېږي لکه چې وراکې
نجونه په سر وړي د ګل شکرونه(۱)

• • •

دغه چې بولې د ژونـــد سنــدره
درنې بوللی ، خـــوږې شکرې
چاته یې وایي ، چاته یې لیــــږي
دا بې اثـــرې ، دا مرغــــــلرې

• • •

چاته ورښيي دا غورځنـــگونه
سرکشې منـــدې، ازاد موجونه
په لویو کـــاڼو ککـــره ټوکې
د چا لپـــــاره دا ټکـــرونه

● ● ●

دا څه جنــون دی ستا په څپوکې
دا څه مستی ده ستـــا په رګوکې
څه هنــګامه ده چې پای یې نشته
ستا په سرود کې، ستا په ناروکې

● ● ●

له ښاره راغلم چې خوب به وکړم
تسـل د درد او اشـــوب به وکړم
ستا څپې راغلی زه یې بیــدار کړم
په ما حرام دی چې خوب به وکړم

● ● ●

اوس چې ستا زړه کې څپه خوځېږي
شعر او سرود شی له مـــا خورېږي
خـــلکو ته وړمه د تا خبـــرې
پې راژوندي شی ورته نځېـــږي

● ● ●

اې لېـــــونيه د کنـــــړ سينه
چې دې اخته کــړم په رسوا مينه
اوس خو نوورکه دا زمــا زړه ته
خپــله څپـــانده سرکشه وينه

• • •

غېږ دې کړه خلاصه چې کمه سمی
ستا په څپوکې اوښــکې ويرجنی
ستا په توپان کې خپل شور خوندي کم
چې زرغونی کــړي رالوڅی ونی

• • •

زړه نړۍ دې ، نـــــوې نړۍ شي
په دې تيارو دې رڼا خـــوره شي
د عشق د دود دې هــره بلۍ شي
د ورور ګلوۍ دې هــره بانډه وي

• • •

يه مسته مسته ، کنـــــړه مسته
په ځـــــګوپېه ، په تګ بدمسته
د ژوند جاله مې درکې لاهو کړه
اوس يې درنيسه اې زبــــر دسته

د سلواغې ۲۴ جلال اباد ۱۳۴۳

# له‌درباري شاعر سره

د ښکلو نجونو او گلونو شاعر
په سپینو لېڅو د خوبونو شاعر
د فحاشیو د بزمونو شاعر
د څو خیرنو ارمانونو شاعر

• • •

په ډېره نرمه مهربانه ژبه
ما نه پوښتل ته هم شاعر یې گوره؟
د ژوندانه په دغه ښکلی لار کې
ته هم د حسن مفسر یې گوره

• • •

ته د گلانو زمزمې اورې؟
ته د پېرونو ترانې اورې؟
ته اوازونو کې رنگونه وینې؟
ته په رنگونو کې نغمې اورې ؟

• • •

تا د ترخـــو شونډو نيشه ليــــدلی؟
تايې د سرو شيشو شراب څښلـــی؟
تا په مالـــګينو پستو شونـډو ايښي
تا په ســــکروټو کې ګلاب څښلی

● ● ●

د لنــډو څڼو تر چتــــــر لاندې
د غوږ برېښنـــا په زړه ويشتلی نه يې؟
کـــله نيشه کې د پيغــــلو ټوخندي
په هوســــــوونکې ځېښلی نه يې؟

● ● ●

د مستی ښځی يـــاغي شوی نظـــر
تا په شرابــــــو کې ليـدلی که نه؟
د عشـــق اواز دې د هغی له زړه نه
په اوسيـــلو کې اورېـــدلی که نه ؟

● ● ●

د تور کميس له سپځېــــدلی درزه
د نجــل پوستکې تخنـــولی نه يې؟
تا چې د حسن لوټمـــــاري کوله
هغی په غـلا بــــاندې نيولی نه يې؟

● ● ●

کـــــله دې حـــور د مشرقه سره
د مې جامـــــونه جنـــګولی که نه ؟
کـــله دې تی د مغـــــربی ښاپیرۍ
په نڅېـــــــــدو کې زنګولی که نه ؟

● ● ●

کـــله د لنډو کمیســــونو اعجـاز
له ساړه عقــــله راایستـــــلی نه یې ؟
بیــــا دغوښنیـــــو بلـــورینو ورنو
د شوق په اور کې سوځېدلی که نه ؟

● ● ●

تا خلاصی کړې دي د نجونو تنۍ
تا له چا ایستی دایستـــــلو جامی ؟
چا چې پټ کړی په شوخۍ کې بدن
تا یې چیــــرلی د چیـــــرلو جامی ؟

● ● ●

کـــله دې شین کمیس په سپینو پښو
چېــــــرې لیدلی چې ښویېږې پسی ؟
له زنــــګنو تر ښـــــکلو تیـــو پوری
ورو ورو خوځېږي او لوڅېږي پسي ؟

● ● ●

تا لوخـــه شوې غنــم رنګه نجلی
سرې رڼـــایي لاندې لیـدلی که نه؟

تا د نیشي په لیــــونی جهان کې
پخپـــلو متو کې نیـــولی که نه ؟

● ● ●

تا په سینه بانـــدې داغــونه ایښی
چـــا د ګرمو پیـــــدونکــو تیو ؟

تایې رودلی دي د نـــــارو څوکی
ته یې مست شوی یې په سپینو میو ؟

● ● ●

کــله د عشق او ګنـاهونو سین ته
په مجبــــوری کې ښوېدلی نه یې ؟

د چا په ګرمه په تبجنه غیــــږ کې
زړو شـــرابو څمـــــلولی نه یې ؟

● ● ●

که ته شاعر یې د عشقــونو اوسه
څه د شرابـــو څه د نجونو اوسه

څه د ځوانیـــو د خوبــونو اوسه
څه د ګناه او څه د خوندونو اوسه

● ● ●

ته په باغـــــونو کې ګلـونه ستايه
ته په ګلـــونو کې رنـــګونه ستايه

ته د زري جامو په مورګـو باندې
د چا د سرو شونډو لالـــونه ستايه

● ● ●

که ته شاعر يې د غمــــونو مه شه
کور د دردونو او رنځـــونو مه شه

د فريـــادونو کـــــــړاوونو مه شه
د ټول عـــــالم د عذابـونو مه شه

● ● ●

ستايې د خـــلکو له رنځو سره څه؟
ستا د بزګـر له ورځو شپو سره څه؟

چېـــرې چې غواړې پالنګ وغوړوه
ستايې له سمڅـــو او کپو سره څه ؟

● ● ●

مــــا وې شاعره؛ اې زړه شاعره
لادې ناولی هوســــــونه شته دي

لا دې په سر کې د فتنې لوخـــرې
لا دې په زړه کې فسادونه شته دي

● ● ●

ته د سلطان د دربارونو شاعر
زه د محرومو ولسونو شاعر
ته د خمونو او جامونو شاعر
زه د پیړۍ د قیامونو شاعر

● ● ●

ته د پاچا د غرورونو شاعر
زه د غلام د فریادونو شاعر
ته د سلطان د نعمتونو شاعر
زه د بزگر د سوکړکونو شاعر

● ● ●

ته د مانۍ د اقبالونو شاعر
زه د کیږدۍ د ادبارونو شاعر
ته په بزموکې د نازنو شاعر
زه په زندان کې د مرگونو شاعر

● ● ●

ته د نیکمرغو پسرلیو بریښنا
زه د بدمرغو بارانونو ژړا
ته ماښامی کې د بزمونو نڅا
زه سباوون کې د تیغونو ځلا

● ● ●

زه د مظـــــلوم د غور ځېـدلو ګواه
زه د ظالـــــــم د غـــرېدلو ګواه
زه د دهقــان په ويلى شوې غوشه
د زمينـــــــدار د شخووهلو ګواه

● ● ●

زه د بې وسو د ځګېــــــرويو اواز
د اسيـــــــرانو د پېـــــــريو ژړا
زه ولســــــونو ته د مسني قــاصد
زه ظالمـــــــانو ته د تـورې سزا

● ● ●

زه د بربنـــډو د بزمـــــونو نه يم
د خـــــودفروشو د عشقونو نه يم
زه د اغـــــزو يم ، د ګلونو نه يم
زه دوزخى ، د جنتـــــونو نه يم

● ● ●

زه عـــــذابونو زېـــــږولى يمه
زه توپـــــانونو ازمـــويلى يمه
زه د خـــــوني بادو څپېړو په مخ
تر زر كـــــــرته ډېر وهـلى يمه

● ● ●

زه د وطن د غـــــــــریبیو بچی
د تورو شپـــو د بې وسیـــو بچی
د نامینـــــــدیو د سلګیـــو بچی
د بې ثمـــــــره اوسپـــلیو بچی

• • •

زه د غمـــــونو عـــذابونو شاعر
د یو وطن د کـــــــړاوونو شاعر
زه د بزګـــــرو د ننـــګونو شاعر
زه د کـــارګرو د جنګونو شاعر

• • •

زه چې شاعر یم د انســـان د مینی
ریږدګالـــــــونکو ته شعرونه لیـکم
زه په مـــــالوچو کې لمبې کرمه
زه په بارونو کې اورونه لیـــــکم

• • •

زه همـــــــدغه یمه، دغه به یمه
نـــــګه د خـــلکو وم، نګه به یمه
د زیارستـــونکو د مرچـــلو پرچم
لـــکه پخـــوا چې وم، هغه به یمه

دوری ۱۲ کابل ۱۳۵۴

# ورکه لار

غــــرونو بيا د لـــړو څــــادر واغوسته
بيـــــايې د تنــــدي تبۍ لنـــدۍ شولې
پاس له هســـکو څوکـــونو نه ژوروته
ږنـــــــګی د وريځو قـــــافلې شولې

• • •

بـــــاد په مخه رټي دوورو اوښـــــان
ښکته، لا هم ښکته، مخ په ځوږوځی
خــــوږ کې له نمجنو او لنــــــدو بوټو
څاځی ساړه څــــاڅکې او په ټړوځی

• • •

پورته د اسمــــان د مخ په ګونځو کې
ورکـــــه ده له سره د نـــــــرمۍ مخه
دم په دم بنـــــدېږي تـــودو سيمـو ته
لاره د رمـــــــو او د کېـــــږدۍ مخه

• • •

وریځـــــو رنګی کړې د نجات نښی
واورو د لاروو پښی ترلـــــــــی دي
لړو د ماښـــام په ګونـــــګه خره کې
غـــرو کې د شپنـــو لارې وهلی دي

● ● ●

زه چې د دې سختو او سړو غـــــرونو
یو د ورکـــــــو لارو مســـــــاپر یمه
زه د یاغــــــــی مینې د وزرو په وزر
دلته خپـــــــلو ورکــــو پسې سر یمه

● ● ●

زه چې په دې شپه کې له توپـــان سره
کنـــــــدو کړنــــګونو کې خوځېږمه
هیــــــله مې دغه ده خپـــلو هڅو ته
زه به خپـــــــلې مینې ته رسېــــږمه

● ● ●

یه په ویده لمـــــر کې د شغلو حوری !
پرېږده چې په لیڅه دې سر کېـــــږدم
مه تړه زمـــــــا په مـــخ ور مه تړه !
شپه دېـــره سړه ده او زه رېـــــږدمه

● ● ●

پرېږده چې د تا په تــــــوده غېږه کې
دا د مـــرګ دور کې شپه سبـــا کمه
پرېږده چې د مینې په مستیــــــو کې
دا د غـــــرونو ورکه لار پیـــدا کمه

دمرغومی ۱۱ کابل ۱۳۵۴

# ځوان شاعر ته(۱)

یه د هیلمند د غورځنګونو عطا
د یاغي سین د فریادونو عطا
د ویدو دښتو په سړه سینه کې
د یو ملت د عذابونو عطا

● ● ●

د هر ماښام له وینو ډک ګوګل نه
ستا د خوږمن زړګی ناري اورم
د هر غمجن نسیم په ښکلی ژبه
ستا د دردونو اشاري اورم

● ● ●

د تارګو ته چې کوم ساز راځي
ما ته دغلته آواز راځي
ته د آغاز د لذتونو کافر
ما ته ارمان اوس د آغاز راځي

● ● ●

۱ ــ هادي عطایي

د سهار شپې په اوسیـــــلو کې ولی
مـــا ته رالیـــــږي دا سهار ســـاوې
دا د ناصورو ځیـــــګرونو ځګیروي
دا د پیـــــریو دغمـــــــــونو ناوې

• • •

ته وایي وسوم ، زه دې سوی غـــواړم
چې سوی نه وي خو پتنـــګ نه وي
ته د حـــــرمان په چــړو ژوبل نبه یې
چې ژوبل نه وي خو د جنـــګ نه وي

• • •

په آرامـــــۍ کې دې زوال وینـــــم
شاعره ګـــــوره چې خـــراب نشي
یاغي څپه شه د دریـــاب په زړه کې
ګـــــردابه ګـــوره چې سراب نشي

• • •

شرم دی شرم د ســارا اغـــــزي ته
چې رنـــګ او عطر د ګـــلانو لري
پیغور پیغور دی د توپـــــان مرغه ته
چې لطـــافت د بلبـــــــــلانو لري

• • •

کــله چې ونخېــږي تـــــورې څپې
کـــله چې وځړېـــږي خـــــړې لړې
کــله چې وايښی سپينــــکی ځگونه
کـــله چې وځبی دغــــــــرونو تړې

• • •

کــله چې ووزي له ياغي وريځـــــــو
د قهــــــرجنو تنــــــــــدرونو آواز
کــله چې يو شي د درياب کړيـــــکو
په يرغلـــــو کې د برېښنـــاوو پرواز

• • •

هله درياب ، درياب درياب ښـــکاري
د قدرتو د عظمتــــــــونو زانـــــگو
ستر برېښی ، ښـکلی او ژوندی برېښي
د حرکت او بدلــــــونو زانــــگو

• • •

همدې ياغی، ياغی، ياغی ته گـــوره
خومـــــره قوي او هيبتناک ښکاري
رعب او وېره او پرتــــــــم خوروي
آزاد او ښــــــکلی او بېباک ښکاري

• • •

ته هم درياب يا د دريـــــاب زوی شه
د سره هیلمنـــد د سيــــلاوونو شاعر
يا د وطن د سوځـــــــونکو ورځــو
د يرغـــــــلونو ، ګـــردشونو شاعر

• • •

شه د ساړه رغـــلی په مړو ایـــرو کې
د بیا لمبـــــــو د بلیـــــــدو هادي
شه د څپو د شوګیـــــــريو همـــراز
شه د هیلمنـــــــــد د ترانـــــو هـادي

• • •

هیلمنـد خو مست دی ، د مستيو شاعر
زمــــــوږ د هیلـــــــو د هستيو شاعر
د زمـــــــــانې د سرکشـانو سرکش
د دې وطن د بدمستیـــــــــــو شاعر

• • •

لکه له زغـــــــــرو تبنتېدلی ښامـــــار
له هـــــــرې تيـــــږې سره تن وهی
په هـــره پرښه بانــــــدې خوله لګوي
نویو سیـــــــــــلونو ته لمـــــن وهي

• • •

دی د محمـــــود د حمـــاسو شاعر
دی د مسعـــــود د تلـــوسو شاعر
دی د آسمـــــان د تنـــدرونو ويانډ
دی د سرو وينـــــــو د کاسو شاعر

• • •

دی د افغـــان د عظمتـــونو راوي
دی د ميـــرويس د يرغـــلونو راوي
دی په ايـــران کې دهوتـــکو وړونو
د ترخـــــو مانو او مـــرګونو راوي

• • •

دی د وطن د کـــــــړاوونو نـــاره
دی د تاريـــــخ د مرســلانو اميـر
دی د جهـــان د حواثو نهنـــګ
دی د زمـــان د آسمانونو قجيــــر

• • •

دی د کــــــلونو په تيـــاره تونل کې
په سختـــــو لارو د مـــزلونو هادي
دی د پيـــړيو په ستومـــــانه زړه کې
په اوږدو شپـــــو کې د صبرونو هادي

• • •

که ته رښتیــــایي د هېلمنـــــد شاعر
د یاغی سین د غـــــورځنګونو هادي
نو د پیـــــړۍ په کـــــر کېچنه لار کې
شه د زلمــــــو د ارمـــــانو هادي

● ● ●

ورځه راویښ که د غضب بـــــادونه
په سپین میـــــــدان شه د توپان هادي
ورځه مـــــــانو شه ، د نجـــات ماڼو
په سختــــــو لارو د انســـان هادي

● ● ●

بانـــدې راووزه د جـــــګړې ډګر ته
لویـــو ننګونو ته قـــوت ورکــړه
له کـــــلکو کارو سره وجنـــګېږه
ځـــــوانو موجـــونو ته طاقت ورکه

● ● ●

د دښت بادون چې ځګـــرېږي عبث
ورکـــه دا ته د جنـــــــګېدو ژبه
د دې بیــــدیاوو د خــــورو پرګنــو
د ویښېـــــــدو او جګېـــــدو ژبه

● ● ●

دې تورو تورو غــــرو ته وغـــږوه
دخپـــلې سرې فلسفې سره شعرونه
دغـــو سږو خـــــاورو ته ننه بـاسه
لـــکه د اور غـــوندې تاوده شعرونه

• • •

دې کنهـــو خلکـــو ته غوږونه ورکه
پرپږده چې واورې د توپـــــان آواز
دا له جهـــــانه يتيم شـــوی وطن
پرپږده چې واورې د جهـــــان آواز

• • •

شې د خپـــــو د يرغـــــلونو وطن
د انقـــــلاب د ارمـــــانونو وطن
د تنـــــدرونو تر اورونـــــو لاندې
د نوې ژونـــــد د تـــــکلونو وطن

دزمری ۱۰ کابل ۱۳۵۴

# په خلکو خلکو

(دوهمه ترانه)

په خــلکو ! خــلکو ! دوطن خلکو !
په د دې غـــــــرونو مبـــــارزانو
آیا در رسي شور د مـــــــــوجونو
په شپه کې چیـغې د مــــــانوګانو

● ● ●

د وطن غېـــــــږه پرون بستـــــر ؤ
خو اوس د وینــو ، یاغي دریاب شو
پکې ډوبېـــــــږي هر یو نــــاولی
هغه چې خصــــــــم د انقلاب شو

● ● ●

اوس ترېنه تښتي په بیـــــړه بیــــړه
څوک چې د خوښو ورځو یاران وو
په سرو لمبـــــــو کې ورته ولاړ دی
څوک چې د خلکو خدمتــګاران وو

● ● ●

ښه ده چې ځمکه په لړزېـــدو شوه
ښه ده چې پای شوې تورې چوپیاوې
ښه ده چې پراخه شو میــدان د منــډو
ښه ده چې یو شوې ټــولې ژړاوې

● ● ●

اوس خونړۍ شوې د وطن او ښــکې
پکې نسکـــور د زور بېــرۍ شوې
د شهــزادګیــو د سرو غـــروندې
د ماتېـــدونکو غاړو کـــړۍ شوې

● ● ●

وطن راویښ شو خــــلک جنګېږي
هـــره ورمه یې د ننــــګ نغمه ده
د خـــــاورې هـــــره ذره تبجنه
د نېــــکو، بدو تر مینــځ جـګره ده

● ● ●

اوس راژوندې شو مــــړه آوازونه
دا د پېـــړیو چوب فریــــادونه
دا په ګــوګل کې د اور بڅـــرکې
پټ غضبـــونه، پاک کســاتونه

● ● ●

د اور په سین کې اوس لامبوزن شو
هغه چې هسې نقش زمین ؤ
د لوخو تورو ، میدان ته وووت
کوم چې د مخې ، تماشا بین ؤ

• • •

پرېږده چې لوړ شي، آواز د تندر
پرېږده چې ووزي ، دوینو لارې
پرېږده چې لنډ شي، پرېږده چې پرې شي
دا تور لاسونه ، نا روا چارې

• • •

دا به وطن ته د عزت نوم شي
دا به د خلکو دژوند مضمون شي
دا به یوه لاره د قربانۍ شي
دا به د ځمکې یو نوی یون شي

• • •

دا به راوینې کړي ، ویده ننګونه
دا به بیدار کړي ، پټ غیرتونه
دا به رواج کړي ، نوی نرخونه
دا به رڼا کړي ، د بزکر خونه

• • •

ورسره ځغــــله، تر څو چې ځغـلې
دا سوځــــــوونکې د اور سپـلونه
ورسره لـــوبه، څومــره چې لوبې
دا د سرکشــو ، څپـــــو سپلونه

• • •

دا سنـــــګرونه، دا سنـــــګرونه
د اور واټـــونه، د وینـــو لارې
دا تمامېـــــږي، دا هـــــواريږي
د سر په لــــوبه، نه قــــلارې

• • •

پښنه پخه ږده ، وارخطـــــا نشي
دا د مېـــــرانو ، لومـــړنی باب دی
په دې کې نشي ، د ناز خــــوبونه
دا انقـــلاب دی، دا انقـــلاب دی[1]

۴ر۸ر۱۳۶۰

۱ ــ د (یه خلکو خلکو) «دوهمه ترانه» په دوهم چاپ کې زیاته شوی ده.